سلسله
گفتمان‌های
رئیس جمهور

لومړی بحث

# ملي هویت فرهنګ تاریخ



تاریخ، فرهنګ و هویت ملی

د جمهور رئیس د بحثونو لړۍ

۱

زموږ تمرکز به پر داسې بنسټونو اېښودلو وي چې بېرته د ستنېدو وړ نه وي. په دې معنی، که افغانستان یو ځل د برښنا د لېږد، نل لیکې، نوري فایبر شبکې، لویو لارو او ریل پټلۍ له طریقه سیمې سره وصل شي، نو دا ځل بېرته په شا نه شي تللی. که مو په راتلونکو څلورو کالو کې د افغانستان د سیندونو اتیا سلنه اوبه مدیریت کړې، بیا به دا اړتیا نه وي چې هر څه بېرته له سره پیل کړو.



اداره ارتباطات عامه و استراتیژیک ریاست جمهوری



له ځوانانو سره د جمهور رئیس د بحثونو لړۍ

(لومړی بحث)

# تاریخ، فرهنګ، ملي هویت

چهارچنار ماڼۍ، ارګ

(۱۳۹۸)




**کتاب پېژندنه**

---

**تاریخ فرهنګ او ملي هویت**

له ځوانانو سره د جمهور رئیس د بحثونو لړۍ

(لومړی بحث)

ISBN ۹۷۸-۹۹۳۶-۱ – ۰۴۵۶-۳

**نېټه او ځای**

جدي ۱۳۹۸، چهارچنار ماڼۍ

**اهتمام، پښتو ژباړه او سمونه**

میراحمد یاد

**ویراستار دری**

شیرآقا شایان فریور

**ناشر**

اداره ارتباطات عامه و استراتیژیک ریاست جمهوری

**صاحب امتیاز**

ریاست مطبوعات

**سال چاپ**

۱۳۹۹هـ.ش ـ ۲۰۲۱ م

**تیراژ**

۲۰۰۰ جلد

**طرح جلد**

سید محمد حسینی

**صفحه آرا**

سپین سهار

# فهرست

درنو محصلینو، خوېندو، ورونو، د پوهنتون قدرمنو استادانو او درنو لوستونکو، له هر څه وړاندې تاسې ته د بشریت د رهبر ډالۍ وړاندې کوم.

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته

زما خبرې په شپږو برخو کې دي. زه په دې هیله یم چې زموږ په ځوان او لوستي نسل کې دغه بحثونه رواج شي او موږ د همدې بحثونو په وسیله د ملي تفاهم او ګران هیواد د بیارغونې ښې پایلې ترلاسه کړو.

اصلي بحث ته له ورتګ وړاندې د مقدمې په توګه یو څو ټکي وړاندې کوم.

## هدف مو څه دی؟

د دغو بحثونو هدف دا دی چې زموږ د شتمنیو په اړه علمي پوهه دولت او ولس ته په عام فهمه او داسې ژبه انتقال شي چې هغوی پرې وپوهېږي. عرض مې دا دی چې موږ د ملت په توګه د خپلو شتمنیو په اړه علمي پوهه او درک نه لرو او تر څو چې دغه درک په څرګند، علمي او مشخص ډول رامنځته نه شي، زموږ برنامې، د بحثونو بنې، توقعات او د مسوولیتونو له مخې زموږ خپله ونډه په اساسي ډول نه را څرګندېږي. په دې خاطر مې د خپل هیواد معتبرو پوهنتونونو محصلینو، استادانو او ژمن ځوان نسل سره دغه بحث پیل کړ، زما په نظر دا بحث د افغانستان لپاره ډېر ارزښتمن دی.

زموږ د ملي هویت د پېژندنې او ځلونې کار یوازې د ادیبانو، ژبپوهانو او تاریخپوهانو کار نه دی، بلکې دا زموږ د ټولو افغانانو ګډ مسوولیت دی، نو له دې امله باید د افغانستان نوی نسل په خپل ملي هویت ښه پوه شي او د همدې په رڼا کې خپل راتلونکی انځور کړي.

## وسیله څه ده؟

د افغانستان د ملي هویت رامنځته کولو وسیله د دارالامان ماڼۍ ده. دا ماڼۍ پخپله ماهیت نه لري، ځکه یوازې یوه ودانۍ ده، خو له تاسې دا تمه لرم چې په افغانستان کې د یوه ملي بحث په را پیلولو دغه ماڼۍ د ملي هویت په سمبول بدله کړئ.

## لارې چارې او طریقې

د ټولو ښو لارو چارو او نوښتونو د تشخیص لپاره باید یو ملي بحث طرح او پیل شي. تاسې باید د بحثونو د دغه لړۍ د اداره کولو مسوولیت واخلئ.

هر نمایش یوه کیسه او روایت غواړي. تاسې به د دې نمایش لپاره کوم روایت رامنځته کوئ؟

خو د کیسې تر رامنځته کولو دا ډېره مهمه ده چې دغه کیسه او روایت به نورو ته څنګه رسوئ؟ مثلاً که د دې کار لپاره تاسې په کابل کې یو موزیم جوړ کړئ، نو دا موزیم به یوازې تر کابله محدود وي، خو مهمه دا ده چې دغه موزیم به د ټکنالوجۍ په مرسته هر ښوونځي، هر کلي او هر جومات ته څنګه رسوئ؟ دا په دې خاطر وایم، که موږ په دې برخه کې پانګوونه کوو، نو د دې پانګوونې ګټه او نتیجه باید ټول افغانستان وویني.

نو ستاسې ونډه یوازې نمایشي نه ده، ستاسې اساسي دنده دا ده چې یو ملي روایت نورو ته ورسوئ، دا هم ستاسې مسوولیت دی چې دغه ملي روایت به څنګه سره منسجموئ.

## له تاسې مې پوښتنه څه ده؟

زموږ له تېر، اوس او راتلونکي نه، ستاسې د ځوان نسل روایت څه دی؟

له تاسې ولې دا پوښتنه کوم؟ ځکه زه په دې نظر یم چې تاسې به ان شاء الله د افغانستان د معاصر تاریخ ستر نسل یئ. تاسې به هغه نسل

يئ چې افغانستان به له بې ثباتۍ نه ثبات ته؛ له بې بېوزلۍ نه بډاينې ته؛ له انزوا نه ارتباطاتو ته؛ او له ګډوډۍ او انارشۍ نه يوه باثباته جمهوري نظام ته وړئ.

خو اوس پوښتنه دا ده چې تاسې د دې کار هوډ او ظرفيت لرئ که نه؟ موږ خو درنه روان يوو. زموږ د نسل ستونزه دا ده چې عموماً لنډ فکر کوي او د څلوېښت کالو پر ځای د څلوېښتو ورځو غم خوري، خو تاسې اړ يئ چې د څلوېښتو او پنځوسو کالو فکر وکړئ او زه هيله لرم تاسې ځوان نسل به داسې يو بنسټ ږدئ چې د افغانستان راتلونکی نسل بيا د پنځو سوو کالو فکر وکړي.

په دې اړه به درته زه ځينې بېلګې ووايم، نور فکر پرې پخپله وکړئ او ځان ته يې تشريح کړئ. ما ډېره معلمي کړې او له دې ځايه (جمهوري رياست نه) چې خلاص شم، بېرته خپل ټولګي او معلمۍ ته ور ګرځم، په دې خاطر تاسې ځوانانو سره آزاد بحث کوم. زه يوازې دغه بحث پيلوم او دا بحث درسره د جمهور رئيس او چارواکي په توګه نه کوم، بلکې د يوه استاد په توګه کوم او له دې امله دا بحث له يوه عجيب ځای نه هم پيلوم.

تاسې ځوان نسل د افغانستان په جیولوژۍ پوهېدلي یئ؟ زما ښه یادېږي چې د لیسې په دوره کې به شاګردان د جیولوژۍ له ساعته تښتېدل... اوس هم تښتئ، که حالات ښه شوي دي؟

پیل مې له جیولوژۍ ولې وکړ؟ دا خپل دلیل لري! له نن نه شپږ سوه میلیونه کاله مخکې یوه پېښه وشوه او هغې پېښې ستاسې راتلونکې وټاکه. په شمېر کې غلط شوی نه یم، پوره شپږ سوه میلیونه کاله مخکې یادوم!

له نن نه شپږ تر شپږ نیم سوه میلیونه کاله مخکې افغانستان نه و او د اوسني افغانستان شمال او جنوب دواړه جلا جلا لویې وچې وې. کابل یوازې پروت ټاپو و او د هند نیمې وچې سره یې هېڅ ډول اړیکه نه درلوده. بیا د دغو دوو لویو وچو د یوه قوي ټکر له امله د هندوکش غرونه رامنځته شول او دویم ټکر یې مور د هند له نیمې وچې سره ونښلولو.

پایله یې څه شوه؟

یوه پایله یې دا شوه چې ستاسې په خاوره افغانستان د نړۍ مهم کانونه رامنځته شول.

اوس که موږ په خپلې جیولوژۍ سم پوه شوو، نو په نړۍ کې به د مسو او اوسپنې ستر تولیدوونکي او د نړۍ په کچه د سرو زرو، لاجوردو او نورو قیمتي کانو ستر لوبغاړي شوو.

تاسې په دې پوهېږئ چې تر ټولو لویه شتمني مو لیتیم ده؟ د

راتلونکې نړۍ د برښنايي موټرو برخليک په تاسې او دې پورې اړه لري چې تاسې خپل ليتيم څنګه استخراج او مديريت کوئ؟

د منديليف په جدول کې اوولس نادره عناصر راغلي او څوارلس يې ستاسې په افغانستان کې دي، خو تاسې دومره پوهه لرئ چې دغه ستره شتمني پرې مديريت کړئ؟ آيا تاسې هغو تخصصي رشتو خپلولو ته چمتو يئ چې دغه شتمني په اساسي ډول نه يوازې د نن او سبا، بلکې د راتلونکو نسلونو لپاره مديريت کړي؟

نو تمه مې درنه دا ده چې دغه شتمني خپلو خلکو ته وښيئ. لومړی يې خپله ښه وپېژنئ، خپله پرې ځان ښه پوه کړئ او بيا يې خپلو خلکو ته وښيئ او هغوی پرې پوه کړئ. افغان ماشوم بايد تاسې وهڅوئ او دا انګېزه ورکړئ چې ښه جيولوژيست او ښه مدير شي. هغوی بايد پر دې پوه شي چې په کانونو (معدنياتو) کې قانونمندي ولې مهمه ده او ناقانونه کيندنې څه زيانونه لري. دا درته ځکه وايم چې نړيوالو تجربو دا خبره ثابته کړې ده. دوه بېلګې يې درته راوړم: کانګو د کانونو او معدنياتو له پلوه د نړۍ په غنـي هيوادونو کې راځي، خو په عين حال کې د نړۍ فقير او زموږ په شان جنګ ځپلی هيواد دی؛ برعکس ناروې هيواد بيا دا وړتيا لري چې خپله طبيعي شتمني د راتلونکو نسلونو لپاره مديريت کوي.

بل مهم ټکی زموږ ګاز او نفت بايد مديريت شي. ښه زيری دا دی چې په لومړي ځل افغانستان کې د يوه کوهي (څاه) د ګازو مقدار له يو تريليون متره مکعبه اوړي. پخوا مو يوازې څو ميليارد متر مکعبه درلود،

خو اوس ان شاء الله سلگونه میلیارده متره مکعبه گاز په تثبیتېدو دی. خو اوس پوښتنه دا ده چې دا ګاز یوازې په شبرغان کې پاتې کېږي او که کاپیسا، هرات او هلمند هم له دغه سترې شتمنۍ برخمنېږي؟ که تاسې سره د انرژۍ او تودوخې غم وي، نو په دې باید پوه شئ چې دغه ګازونه څنګه مدیریت کړئ.

د ګازو خبره مې وکړه، خو تر ګازو یو بل مهم، آسان او دستي اړین شی د افغانستان خاوره ده.

## خاوره، اوبه او ځنګلونه

موږ تر اوسه خپله څو سلنه خاوره تحلیل کړې ده؟ ټول وایئ چې د کورونو شاوخوا کوهیانو اوبه مو کمې شوي او کوهیان ژور شوي دي، د دې په دلیل پوهېږئ؟ خاوره په یو دم نه کښني. څومره چې اوبه ښکته کېږي، هغومره ورسره خاوره بدلېږي، نو که تاسې جیولوژي زده کړه، لومړی به په دې پوه شئ چې په خپله خاوره څو منزله ودانۍ ته اجازه ورکولای شئ؟

تر څو چې موږ د ځمکې لاندې اوبو باندې پوه نه شوو او داسې ژورې څاګانې کېندو، نو پایلې به یې ښې نه وي. که د ځمکې لاندې دا اوبه دوامدارې وي بیا هم ښه ده، خو که دوامدارې نه وي، نو پوه شئ چې کار خراب دی او راتلونکی نسل مو له اوبو محروم کړی دی. خاوره او اوبه به تاسې ته ډېر عادي شیان ښکاري، خو همدا ستاسې او د دې وطن د راتلونکي نسل د ژوند اساسي عناصر دي. په دې خاطر باید

تاسې له خپلې خاورې او اوبو يو علمي برداشت ولرئ.

زموږ ډېر ځنګلونه له منځه تللي دي، دغه ځنګله بايد بيا څنګه ورغېږي؟

خبره مو د ځمکې کوله، تاسې پوهېږئ چې افغانستان د زلزلو مرکز دی او پغمان او سروبي دواړه د زلزلې ژور چاودونه (شکافونه) دي؟ د کابل څو سلنه ودانۍ د زلزلې پر وړاندې محاسبه او سنجول شوي دي؟ سره د دې چې زموږ ډېرې ودانۍ د تاريخ په اوږدو کې د همدې زلزلو له امله نړېدلې دي.

د اوبو لګولو په اړه درسره وروسته غږېږم، خو دا پوښتنه درنه کوم چې له تاريخي پلوه، موږ له خپلې جيولوژۍ څه ګټه اخيستې ده؟

په قبل التاريخ دوره کې، د آسيا تر ټولو ستر صنعتي ښارګوټي په عينک کې و. د عينک د مېسو کان د قبل التاريخ دورې تر ټولو ستر صنعتي مرکز و. موږ دې ته ورته لسګونه کانونه کشف کړي وو، خو له بده مرغه ...!

**پايله**

د دې ټول بحث پايله څه شوه؟ پايله دا شوه چې جيولوژي جدي وګڼئ. دا ستاسې لپاره فرصت هم دی او محدوديت هم! اوس د دې اړتيا ده چې زموږ نوی نسل د جيولوژۍ په اړه يو جلا ليدلوری ولري. په تېرو پېړيو کې مو له جيولوژۍ د ګټې اخيستنې لپاره کافي وسايل نه درلودل، خو که په راتلونکو پنځوسو کالو کې تاسې په جيولوژۍ

سم پوه شوئ، نو دا ستاسې د ټولو ژوند بدلوي.

ښېګڼه څه ده؟ ښېګڼه دا ده چې الله تعالی ﷻ افغانستان ته یو ستر نعمت ورکړی دی. زیاتره هیوادونه چې جیولوژیکي شتمني لري، سرچینې یې ټولې په یوه سیمه کې وي، مثلاً د عراق تېل وګورئ، ټول په مشخصه سیمه کې دي او په عراق کې د طبیعي زېرمو ټولې شخړې په همدې موضوع را پورته شوي دي، خو دا د شکر ځای دی چې د افغانستان طبیعي سرچینې په مساویانه ډول وېشل شوي او داسې هېڅ سیمه مو نشته چې ستره طبیعي شتمني ونه لري. ستاسې لس محروم ولایتونه، د نړۍ غوره طبیعي سرچینې لري.

نو بیا هم درته وایم، که په جیولوژۍ سم پوه شوئ، نو دا ټولنیزه، مالي او سیاسي شتمني په ډېر عادلانه ډول رامنځته کولای شي. پر موږ خدای ﷻ لویه لورینه کړې ده، خو آیا تاسې د دې وطن د تاریخ جوړوونکي نسل په توګه دا فرصت رامنځته کولای شئ چې له دې شتمنیو ګټه واخلئ؟!

په ښوونځي کې به مو جغرافيه په يادو يادوله، د جغرافيې په تاريخي ونډې او ارزښت به مو هېڅ فکر نه کاوه.

زموږ جغرافيه کومې ځانګړنې لري؟

يو څو به يې درته زه ووايم، په نورو تاسې خپله فکر وکړئ.

موږ تل ويلي چې د آسيا په زړه کې مېشت يوو، دا خبره څه معنی؟ موږ له پنځو تر پنځوس زره کاله مخکې پورې ارتباطي سيمه وو، ځکه د افغانستان جغرافيايي ځانګړتيا همداسې ده. دلته غرونه، سيندونه، درې او خصوصاً دښتې په زنځيري ډول سره تړل شوې دي. داسې نه ده لکه د چين چې پراخه وچې دښتې وې، بيا شنې سيمې يا د غرونو لړۍ وي. دلته چې په کومو سيمو کې توليد کېږي، هغه سيمې سره لګېدلې دي. په دې خاطر زموږ خاوره پخوا د سوداګرۍ زانګو وه. ستاسې د هر يوه په وينه کې سوداګري بهېږي. تاسې د سوداګرۍ پنځه زره کلن تاريخ لرئ، نو ځان په دې مه تېرباسئ چې يوازې په دولتي کار او دنده کې بوخت شئ. تاسې ډوډۍ ګټله، د ټولې نړۍ د ارتباط نقطه وئ، د دې وطن ښځه او نر سوداګر وو. موږ دوه نيم زره کاله پخوا سوداګري ښځې درلودې. په بودايي دوره کې د کاروبار ډېره برخه بانکداراني ښځې وې. په دې اړه تاريخي اسناد لرو.

دا ټول څه معنی؟ معنی دا چې په دې جغرافيه کې د ژوند درېيو برخو په خپلو کې زنځيري اړيکه درلوده:

***۱) ښار***

***۲) اوبه***

***۳) کرنه (زراعت)***

تر کومه ځایه چې تاریخ شته، دا ترې څرگنده ده چې مورِ ښارونه درلودل. افغانستان ته د اسلام مبین دین له راتگه مخکې ستاسې تر ټولو لوی ښار په اوسني بلخ کې و. بلخ یوازې یوه خاطر نه ده، بلکې دا د کاروبار او سوداگرۍ یو لوی مرکز و. عربانو چې د دې ښار برم او لرغونتوب ولید، ام البلاد (د ښارونو مور) یې ونوماوه، سره د دې چې په هغه وخت کې لا بلخ خپل پخوانی شان و شوکت نه درلود او مخ پر زوال شوی و.

د ښار درلودو لپاره څه شي ته اړتیا ده؟

ډوډۍ ته! هو، ډوډۍ چې په کې نه وي، هېڅ ښار نه آبادېږي.

له ښه مرغه د افغانستان هر ښار د یوه سیند پر غاړه آباد شوی او د افغانستان هر ښار لویه کرنیزه حوزه وه. قوي اټکل دا دی چې غنم په لومړي ځل بلخ کې اوړه (ژرنده) شوي او دا قوي گمان هم کېږي چې ډوډۍ هم په لومړي ځل بلخ کې پخه شوې وي.

پخوا خلکو بې غوښې ژوند نه شو کولای. په اوسنیو شرایطو کې مونږ د خپل ژوند یو مهم اړخ هېر کړی دی، دا اړخ د دې خاورې کوچیان دي چې زمونږ د سوداګرۍ او تجارت اساسي محور و.

د جغرافیایي موقعیت له مخې مو په تاریخ کې درې شیان په خاص ډول ځلېدلي دي:

۱) **اوښ**

۲) **آس**

۳) **غنم**

اوښ تر نولسمې پېړۍ د سیمې او نړۍ لارۍ او اورګاډی و، آس د هغه وخت ټانک و او د غنمو په اړه خو مې درته مخکې وویل چې بې ډوډۍ ښارونه نه آبادېدل.

تاسې پوهېږئ؟ یوازې آقچې په کال کې هند او چین ته لسګونه زره آسونه صادرول. زمونږ د سوداګرۍ تاریخ په اوښ او آس پورې تړلی دی.

دا ټول څه معنی؟ معنی دا چې تاسې یوازې د آسیا زړه نه وئ، بلکې د آسیا څلورلارې هم وئ، ځکه افغانستان د مرکزي و جنوبي آسیا او ختیځ و لویدیځ د وصل لاره وه.

نو تاسې خپله د نولسمې پېړۍ انزوا او د شلمې پېړۍ فاجعه هېره کړئ او څلوېښت یا لږ تر لږه پنځه ویشت پېړۍ پخواني حالت ته مو وګورئ.

د افغانستان موقعیت یې تر کانونو څو چنده مهم دی او د یوې سترې شتمنۍ حیثیت لري، ځکه دا خاوره د وصل او نښلوونې ټکی دی. نن چې دا کوم سوداګریز دهلېزونه جوړ شوي، دا له آسمانه نه دي راښکته شوي، اوس هوایي دهلېزونه جوړ شوي دي، خو پخوا مو هم یوازې ځمکنی سوداګریز دهلېز یوازې د ورېښمو لار نه وه، موږ د لاجوردو لارې سربېره نورې لارې هم درلودې. د بدخشان له واخانه نیولې، تر کلفت بندر پورې، د افغانستان هر ښار چې ګورئ په یوې سوداګریزې څلورلارې آباد شوی دی. نو دې ټولو ته په کتو اوس د خپلو غرونو، سیندونو او څړځایونو په ارزښت پوه شئ.

ستاسې ټول څړځایونه په وېجاړېدو دي، دا درته ولې وایم؟ ځکه چې سوله ان شاء الله راتلونکې ده او یو وار چې سوله او آرامي شوه، نو میلیونونه سیلانیان به مو لیدو ته له خیره راځي. نو تاسې دا مسوولیت لرئ چې خپله دغه ستره شتمني وساتئ او ضایع کېدو ته یې پرې نه ږدئ.

د کابل غرونه مو هره ورځ غاصبین درنه غلا کوي، سبا به مو راتلونکی نسل چېرته ژوند کوي؟

له تاریخي پلوه بل مهم ټکی څه دی؟ تاسې که په الوتکه کې سفر کوئ، نو د افغانستان په جغرافیایي ارزښت سم نه شئ پوهېدی. هند ته تر نولسمې پېړۍ پورې، په کال کې یوازې یو څو میاشتې د اوبو له لارې تګ راتګ کېده او نور ټول کال یې د تګ راتګ لاره په افغانستان وه. په همدې خاطر افغانستان تل د هند د دروازې په نامه یاد شوی دی. نن چې موږ بیا ځان د آسیا د څلورلاې په حیث وینوو، نو د پاکستان او هند د دروازې په حیث یې وینوو. دغه موقعیت دربانديې الله تعالی ﷻ پیرزو کړی، خو له دې د ګټې اخیستو طریقه په تاسې پورې اړه لري.

د ګټې اخیستو طریقه په څه معنی؟

دا چې موږ څو اصلي ګمرکونه لرو؟ ترانسپورټ څنګه مدیریت کوو؟ د نوري فایبر شبکه څنګه فعالوو؟ بېلابېل ارتباطات سره څنګه تنظیموو؟ دا ټول ښه فکرونه دي. تاسې باید په دې پوه شئ چې هم د آسیا زړه یئ او هم د آسیا څلورلارې، خو ستونزه دا ده چې په دې برخه کې کافي پرمختګ نه دی شوی. نو تاسې باید داسې علمي رشتې زده کړئ چې دغه پرمختګ ممکن کړي.

د رشتو دغه اړتیا څه غواړي؟ دا غواړي چې په لومړي قدم کې باید تاسې خپل جغرافیایي ګاونډیان وپېژنئ. د ژوند چاپېریال پوله نه لري. که زلزله راځي، نو د افغانستان، هندوستان، پاکستان، ازبکستان او تاجکستان ترمنځ توپیر نه کوي. د ژوند چاپېریال باید د یوه سیستم په توګه وپېژنو، دا باید سره وصل سیستم وي، نه شیندل

شوي شيان چې اوس پرې د ژوند په چاپېريال کې سره سيالي کېږي. د ژوند چاپېريال کې د سيالۍ ځای نشته، يا به ټول انسانان ختمېږي يا به ټول خپل راتلونکی ساتو.

بيا هم تاريخ او جيولوژي دا ټاکي چې کوم شيان چېرته رامنځته شوي او چېرته رامنځته کېدای شي او موږ دا ټول شيان سره څنګه نښلولی شوو.

اوس درسره د نمايش او نندارې يو څو خبرې کوم.

دا چې نن سبا زياتره ګټورې ننداري او نمايشونه په ټکنالوجۍ پورې اړه لري، نو په دې خاطر له ۳D (درې اړخيزه) ګرافيک سره ځان بلد کړئ، ځکه دا مهم دی. موږ يوازې د آی خانم يو درې اړخيزه نمايش درلود او دا په واشنګټن کې د يوه ننداړتون لپاره چتمو شوی و. تاسې بايد افغان ماشوم ته انګېزه ورکړئ. څوک چې په ټکنالوجۍ او د فلم په ترتيب کې کار کوي، زه ورته دا وړانديز کوم چې ننداړې (نمايشګاه) ته دې هم پام وکړي، خو د درې اړخيزو ۳D فلمونو جوړولو ډېره هڅه دې وکړي.

تاسې آی خانم ته وګورئ، دا په آسيا کې د يوناني دورې يو نادره ښار دی. له ترکيې پرته په نوره آسيا کې داسې ښار نشته. لومړی چهلستون (چهلستون مانۍ) په آی خانم کې وه. همدارنګه يې پوهنتون او جمنازيم هم درلودل. زموږ هيواد کې د يونانيانو په دوره کې تر دوو سوو کالو د سقراط مجسمه په آی خانم کې وه.

خو تاسې بايد دا عام فهمه کړئ او خلکو ته يې وښيئ. تاسې بايد

بلخ، بامیان، عینک او همدارنګه نورې هغه تاریخي سیمې او ولایتونه خلکو ته ننداري ته وړاندې کړئ چې زموږ جغرافیه څرګندوي. تاسې باید په دې پوه شئ چې یو فهرست څنګه د هویت په مفکورې بدل کړئ. څنګه خپل ښاري تاریخ، خپله سوداګري، د خپلو ښځو ونډه، د خپلو ارتباطاتو ونډه او خصوصاً څنګه خپل آس او خپل اوښ خلکو ته وښیئ او ننداري ته یې وړاندې کړئ.

د اوښ یادونه ولې کوم؟ ارزښت یې څه دی؟ یوه اوښ به په اوسط ډول تر شلو منو بار ووړ. یوه کاروان د لارې خرڅ تر دریېو ورځو زیات نه شو وړلای، ځکه انتقال یې ګران تمامېده.

زیاتره به یې وریښم، خوراکي توکي او لاجورد وړل، ځکه په دې کې ګټه ډېره وه. خو دا کار اوښ آسانه کاوه، ځکه سوداګرو به هم پرې خپل د اړتیا وړ خوارکي مواد او هم سوداګریز توکي انتقالول. نو زما د خبرې هدف دا و چې د دې وطن ټول خلک له درې زره کالو راهیسې سوداګرۍ سره بلد دي. په تاریخ کې یې پېر او پلور کړی دی. د افغانستان په شمال کې مو ورځني او اونیز بازارونه درلودل. د دوشنبې، چهارشنبې او پنجشنبې بازارونه اوس هم پاتې دي. د افغانستان په جنوب کې مو د کوچیانو قطارونه درلودل، دا ټول د راکړې ورکړې، کار او ارتباطاتو سلسله وه. جغرافیې له یوې خوا موږ دې اړیکو ته مجبور کړي وو او له بلې خوا یو محدودیت هم و. محدودیت دا و چې د وسایلو د کمبود له امله لویو ښارونو رامنځته کېدل سخت وو، تر دې چې بالاخره لارې راغلې.

مثلاً د امير عبدالرحمن خان په وخت کې د افغانستان په شمال کې غنم من په يوه روپۍ وو، خو جنوب کې به د غنمو قحطي وه، ولې؟ ځکه چې د لېږد وسايل نه وو.

نو تاسې بايد د فرصتونو او محدوديتونو رامنځته کېدو ته پام وکړئ. د مرکزي افغانستان بيارغوونه او د غرنيو سيمو پرانيسته ستاسې تاريخي رسالت دی. دا لارې بايد بېرته پرانيستل او سره وصل شي.

بيا هم درته وايم چې جغرافيه هم فرصت دی او هم محدوديت. فرصت دا دی چې د نولسمې او شلمې پېړۍ له کوم ټرانسپورټي انقلابه افغانستان محروم پاتې شوی، هغه بيا رامنځته کوئ. په شته لارو د ريل ګاډي په وسيله د لېږد رالېږد، د برېښنا، ګاز او نوري فايبر شبکې د انتقال له درکه مو عايدات تر ګمرکونو څو چنده لوړېدی شي، خو محدوديت يې بيا دا دی چې دا ټول پانګه غواړي. ترپانګې مهم دا چې د مصرف موثريت، منسجم فکر او مديريت غواړي. که تاسې خپل کانونه مديريت کړئ، جغرافيه مو بدلولای شئ.

په لومړي ځل دا فرصت لرئ چې خپل جغرافيايي محدوديت بدل کړئ، خو پام ورسر په کار دی چې چاپېريال خراب نه کړئ.

په دې برخه کې څو سره تړلي موضوعات راځي، زه به په یوه یوه وغږېږم:

**لرغونپوهنه**

د هیواد پر لرغونپوهنې هېڅ پانګوونه نه ده شوې. دا څلوېښت کاله کېږي چې د افغانستان لرغونپوهنه هېره شوې ده. زموږ د ملي هویت تر ټولو لویه نقطه یوه لرغونپوه (احمد علي کهزاد) پیدا کړې ده. همده کهزاد زموږ تاریخي لرغونتوب دوه زره کال زیات کړ. اوس ستاسې کار دی چې زموږ دغه تاریخي لرغونتوب کوم ځای ته رسوئ. لرغونپوهنه په بدلېدو ده. موږ باید تېر وخت بیا له سره تعبیر کړو او داسې یې عام فهمه کړو چې ټول خلک پرې پوه شي. اوس د دې اړتیا ده چې ستاسې نسل په همکارۍ د سیمې لرغونپوهنه، د ارتباطاتو د وسیلې او د راتلونکي لپاره د تاریخي لید په توګه مطرح کړو.

موږ ټول ولې نن سبا قوم قوم ډېر یادوو؟ آیا دوه زره کاله مخکې موږ قومونه وو؟ یو نیم زر کاله مخکې څنګه؟ لږ یو څو ورځې، یو څو دقیقې په خپل تاریخ فکر وکړئ. د ویدونو په دوره کې چې (اوپانیشادونه) رامنځته کېدل، په هغه وخت کې موږ څوک وو؟ په اوستیایي دوره کې څوک وو؟ په زرتشتي دوره کې څوک وو؟ په بودایي دوره کې څوک وو؟

زموږ هویت تل د بدلېدو په حال کې و، دا اوس چې تاسې په دې تېرو څلوېښتو کالو کې کوم هویتونه ګورئ، دې ته یو ځل د اوږدمهالي تاریخ له زاویې وګورئ! انسان له هویت سره هم نه دی زېږېدلی،

انسانان ځان ته پخپله هویتونه جوړوي او د افغانستان په هویت جوړولو کې لرغونپوهنه مهمه ونډه لري.

**ژبپوهنه**

زموږ ژبې په مجموع کې زموږ یوه مهمه فرهنګي شتمني ده. تاسې داسې کوم هیواد پېژنئ چې خلک یې ژبې دومره په آسانۍ زده کوي؟ خو افغانان هره بهرنۍ ژبه په ډېره آسانۍ زده کوي او لامل یې دا دی چې دوی تل په دوو یا درېیو ژبو غږېدلي دي. یعنې موږ هېڅکله یوه ژبه نه ده لرلې. ژبه زموږ د ارتباط وسیله ده، خو د ژبپوهنې د تاریخ له پلوه باید پوه شوو چې دا ژبې سره خپلو کې څه اړیکه لري. څلوېښت کاله مخکې د مورګن ستېنر په نوم یو کس و، په اتیا ژبو پوهېده، څلوېښت مړې ژبې او څلوېښت ژوندۍ، خو له بده مرغه د پښتو ریښه پېژندنه یې بشپړه نه کړه.

د ژبو د ارتباط بڼه باید په روښانه ډول ولیدل شي. له بشرپېژندنې دا یو مهم ټکی روښانه کېږي چې ژبه، نژاد او فرهنګ درې جلا جلا څیزونه دي. ژبه له نژاد سره هېڅ اړیکه نه لري. دا تاسې چې د نژاد پېژندنې کومې تیورۍ لوستي او اورېدلي، دا ټولې په نازي دوره کې پیدا شوي. موږ بېل نژادونه نه یوو. ورشئ وګورئ، د وینې او لیاړو په یوه ساده معاینه هر څه روښانه کېږي.

موږ په دې جغرافیه کې د ټولو خلکو د وصل او پیوند ټکی وو. مثلاً تاسې وګورئ په دې پنځو زره کالو کې، په دې وطن کې ټولو خلکو

ودونه کړي دي، تاسې ورشئ له خپلو مشرانو پوښتنه وکړئ چې په کورنیو کې د خپلوۍ او واده لپاره د ژبې او نژاد موضوع د یوې ستونزې په توګه مطرح وه؟

نو ژبه د زده‌کړې وسیله ده. هر افغان چې وغواړي، بله ژبه په ډېره آسانۍ زده کولای شي. که موږ په پښتو غږېږو، که دري، که ازبکي، ترکمني، نورستاني، پشه یي یا بلوچي... دا هره ژبه ستاسې یو قوت دی، د انسانانو له یوې لویې ډلې او یو بل فرهنګ سره ستاسې د افهام او تفهیم یوه وسیله ده. نن چې موږ د اوزبېکي او ترکمني دومره لویه زېرمه لرو، آیا په همدې مو له مرکزي آسیا سره اړیکې نه دي رامنځته کړي؟

پښتو ژبه پنځوس میلیونه ویونکي لري او نورې ژبې هم همدومره یا کم و زیات ویونکي لري. نو تاسې باید ټولې ژبې د افهام او تفهیم وسیله وګڼئ او رسالت مو دا دی چې تاسې د دې ژبو ویوونکو ته دا اطمینان ورکولای شئ چې دا خاوره د ټولو شته ژبو او ټولو اوسېدونکو ده؟

اوس باید د ژبو نوع پربېږدئ او تنوع یې تشریح کړئ او په خپلو منځونو کې د ژبو اړیکې سره پیدا کړئ.

**ادبیات**

افغانسان د دري ژبې زانګو ده. ایران پهلوي ژبې هیواد و. د دري ژبې ټول ادبیات موږ خلق کړي دي، اوس هغوی دعوه کوي او شرقي ایران یې بولي.

زموږ پښتو او اوزبیکي دواړه ژبې د دري له فرهنګ سره ژور علایق لري. په تېرو دوو سوو کالو کې پښتو ادبیاتو د دري ژبې د زرو کالو ادبیات په ځان کې جذب کړي دي، اوزبیکي ادبیات هم همداسې در واخلئ.

امیر علي شیر نوایي چې په هرات کې کوم کار وکړ، نن په ازبکستان او منځنۍ آسیا کې کوم اوزبیکي ژبی د هغه کار له امله پر امیر علي شیر نوایي نه ویاړي؟ خو له بده مرغه تاسې نوایي هېر کړی دی، آیا له ادبیاتو سره ستاسې ملي چلند همدا دی؟ د اوزبیکي ژبې تر ټولو ستر شخصیت په هرات کې زېږېدلی او همدلته لوی شوی دی، ټول آثار یې په هرات کې لیکلي دي.

موږ باید د ادبیاتو د تاریخ له زاویې، د ارتباطاتو بڼې ته بیا له سره کتنه وکړو. زموږ تر ټولو ډېر سیاسي فرهنګ زموږ په ادبیاتو کې دی. مثلاً د عدالت کلیمه. د عدالت کلیمه زموږ د ملي ادبیاتو یو تر ټولو مهم بحث دی.

تاسې په دري ادبیاتو کې د شهنامې مهم اسطوره اي څېرې رستم او د هغه فرهنګي نقش ته وګورئ. دی د یوې کابلۍ ښځې (رودابې) زوی دی، پخپله د سیستان دی او پایتخت یې نیمروز دی. که وایئ نه، له بل ځایه راغلی؟

په شنهامه کې د ښځو ونډې ته وګورئ. د سهراب مور تهمینه د سمنګان ده. د افراسیاب د لور منیژې ژوند ته وګورئ. تاسې څه فکر

کوئ چې افغانه ښځه د بل په واک کې وه، که د خپل واده او ګډ ژوند پرېکړه یې پخپله کوله؟

په هغه وخت کې څو افغانې ښځې ملکې وې او پوځونه یې رهبري کول؟

موږ باید د ښځو تاریخ ته د ادبیاتو د تاریخ له زاویې بیا له سره کتنه وکړو. زموږ د ادبیاتو تاریخ نرمحوره نه دی، د ښځو تاریخ دې شلمې پېړۍ بدل کړی دی.

تاسې زموږ د اتلو ځوانانو نقش وګورئ:

د فردوسي له شنهامې لیکلو کلونه مخکې دقیقي په بلخ کې د شهنامه لیکونکو یوه ډله درلوده. زه د د نورو مخالفت نه کوم، خو موخه مې دا ده چې موږ خپل فرهنګي ویاړونه وپېژنو او بېرته یې له سره اصلاح کړو. نور هم د خپلو ویاړونو د یادولو حق لري، ځکه دري بین المللي ژبه وه. خو تاسې باید پوه شئ چې په دې ویاړونو کې ستاسې ونډه اساسي او مرکزي وه، دویمه درجه نه وه. تاسې باید د خپلې ژبې په فکري زېربنا او مهمو کلیمو د پوهېدو لپاره، لومړی په خپلو ادبیاتو پوه شئ.

## تاریخ

په تاریخ پوهېدو ته څه اړتیا ده؟ تاریخ کیسه نه ده! ابن خلدون ویلي وو چې تاریخ عبرت دی. اسلامي تاریخ لیکنه دا ویاړ لري چې د ټولنپوهنې او بشرپېژندنې له پیله، شپږه سوه کاله وړاندې یې په دې

ټولو برخو کې تحلیل درلود. د تاریخ ارزښت دا نه دی چې پېښې زده کړه، ارزښت یې دا دی چې تکراري لړۍ پرې کړئ. ځینې فجایع ولې بیا بیا تکرارېږي او ځینې ویاړونه ولې بیا بیا نوي کېږي؟ د دې ځواب ژور درک غواړي. مثلاً زر کاله مخکې بېهقي د سلطان مسعود په اړه خپل تاریخ ولیکه. تاسې ښايي تر دې عبرتناکه داستان په ټوله نړۍ کې پیدا نه کړئ. څکه داښیي یو پاچا دومره قوي وو چې داړونکی زمری به یې په خپلو لاسو واژه، د تدبیر کمي یې ټوله امپراتوري وپرځوله.

د خپل تاریخ په ژورو پوه شئ چې خپل تېر وخت له راتلونکي سره ونښلوئ. په تاریخ له پوهېدو پرته، په خپل هویت پوهېدل امکان نه لري. نو په دې خاطر باید له یوې خوا په خپلو تاریخي پېښو وویاړو او له بلې خوا باید متوجه شوو چې بدې تاریخي پېښې او فاجعې تکرار نه کړو.

په افغانستان کې لا تاریخي پېښې، د تاریخ برخه نه دي شوي او تراوسه ژوندۍ دي. که پایداره سولې ته رسېدل غواړو، نو د تاریخ د بېلابېلو تفسیرونو له منلو پرته ورته رسېږو؟ څکه دا ټول بالاخره یوې ګډې لارې ته ویستل د ژوند یوه اړتیا ده. دا کوم مسایل چې زموږ په تاریخ کې ریښه لري، آیا د دې مسایلو د منلو او پرې له پوهېدو پرته، سره ګډ ژوند کولای شوو؟

په دې تعبیرونو کې چې کوم کوچني او متوسط روایتونه رامنځته شوي دي، په هغوی پوهېدو لپاره باید ژور درک ولرو چې خپل تېر څلوېښت

کاله ووینو . پر خپلې تمدني ونډې باید باید په اساسي ډول پوه شوو. وګورئ چې ستاسې د روښانتیا دوره کومه وه؟

فریدریک ستار[۱] په خپل کتاب کې د ابن سینا او البیروني یو بحث راوړی دی. د نړۍ ټول اساسي علوم د دې دواړو عالمانو په بحث کې ځای شوی دی. البیروني یوازینی کس و چې د امریکا له کشف څلور سوه کاله وړاندې یې د امریکا د موجودیت وړاندوینه کړې وه. د ابن سینا طبابت شپږ پېړۍ مروج و.

موږ یو ځلاند اسلامي تمدن درلود، په دې باید پوه شوو او خصوصاً اوس باید پرې په داسې حال کې پوه شوو چې د افراطیت له خطر سره مخ یئ.

که په مولانا او بېدل پوه نه شئ، که په جامي پوه نه شئ، که په امیر علي شېر نوایي او خوشحال خټک بوه نه شئ، نو څه فکر کوئ چې د اوسنیو ابزارو او وسایلو په مرسته افراطیت سره مقابله کولای شئ؟

تاسې د تصوف یو ژور فرهنګ لرئ چې زښت ډېر معتدل دی. د عرفان او تصوف په دې خزانه کې انسانانو ته د عادلانه ژوند او افراطیت سره د مبارزې لپاره ډېر ځوابونه او ډېرې حل لارې پرتې دي. دا ټول له کتابونو را وباسئ او د فرهنګي وسایلو په توګه ترې ګټه واخلئ.

که له تاریخي پلوه که په خپل تېر وخت پوه شئ، نو د راتلونکي په اړه مو نظر بدلېږي. موږ دغه تمدني نشر په بېلابېلو دورو کې لوبولای

---

۱ Frederick Starr

دی. د بېلابېلو اړخونو او بُعدونو پېژندل یې تاسې ته پرېږدم، خو اړتیا د دې ده چې تاسې خپله یوه تاریخي طبقه بندي ولرئ او هغه په موډلونو بدله کړئ چې خلک پرې پوه شي.

یو بل ټکی چې تاسې ته متوجه دی، هغه دا دی چې د خپلو نسلونو تاریخ څنګه لیکئ؟ د افغانستان تاریخ د نسلونو له لیدلوري نه دی لیکل شوی، خصوصاً د شلمې پېړۍ تاریخ!

د افغانستان د شلمې پېړۍ تاریخي روایت له بده مرغه داسې و چې پېښې او وقایع ګډې وې، خو د نسلونو تجربې ګډې نه وې، بلکې د تقیسم او تفرقې لامل شوي دي. تېرو پنځو نسلونو ته مو وګورئ. که د افغانستان تاریخ د نسلونو له زاویې تحلیل کړئ، نو بیا د تشو او اومو شعارونو نه ښکار کېږئ. تاسې ان شاء الله دا فرصت لرئ چې د سراسر افغانستان یوه نسلي تجربه تمثیل کړئ. زما نسل هغه وروستی نسل و چې دغه تجربه یې نیمه درلوده، د تېرو اتلسو کالو په شمول چې له یوې خوا لوی فرصتونه میسر وو او له بلې خوا وینې او کش مکش هم و.

نو دا اړینه ده چې خپل تاریخ ته له نسلي لیدلوري وګورئ. هم باید په خپل تاریخ برلاسي شئ او هم باید د پخوانیو پېښو د تکرار مخه ونیسئ. یوازې په تاریخ د پوهېدو په صورت کې د بدو پېښو د تکرار مخه نیولای شئ، خو په عین حال کې تاریخ هم مه هېروئ، ځکه دا زموږ د هویت برخه ده.

ټولې شتمنۍ تولیدېږي. که د تولیدي سیستم په توګه ورته وګورئ، نو تاسې مصرفوونکي نه، تولیدوونکي یئ. اوس ستاسې خوښه چې څه تولیدوئ. داسې سیاسي شتمني تولیدوئ چې زموږ ملي وحدت، اسلامي جمهوریت او تمدني ارتباطات په کې ژوندي شي او که هغه سیاسي شتمنۍ پسې ځئ چې زموږ د نفاق او بېلتون لامل کېږي؟

یو انتخاب تاسې یئ ، دا موزیم درته دا فرصت درکوي چې له یوه ځایه باید کار پیل شي. موزیم د کار پیلولو یوه وسیله او پلمه ده. په تاسې نسل کې باید یو اساسي بحث را پیل شي او په یوه سیاسي شتمنۍ بدل شي. په څه معنی؟ آیا په دې خاوره کې دیکتاتوري حکومتونو، د میراثي نظامونو او تېل شویو نظامونو تجربو نتیجه ورکړې ده؟ آیا د جمهوریت له چوکاټ پرته، په بل سر یو بل سره زموږ مساوات تأمینېدی شي؟ آیا له یوه انتخابي نظام پرته، په بل جوړښت کې زموږ د زعامت موضوع حل کېدای شي؟

دا پوښتنې باید تاسې ځواب کړئ او د نندارتون او موزیم له لیدلوري باید دې ته وګورئ چې د دې هیواد د لومړي مقام (جمهوري ریاست) څوکۍ نیولو فکر ولې تل د شخړو او د افغانستان د بربادۍ لامل شوی دی؟ په افغانستان کې د ځای‌ناستي موضوع تر زرو کالو نه ده حل شوې. تل ورور د ورور، پلار د زوی او زوی د پلار په مقابل کې ولاړ دی. نو دا موضوع باید داسې تحلیل شي چې ځواب ترلاسه کړئ. او تاسې چې کومه سیاسي شتمني رامنځته کوئ، په هغه کې باید د

هیواد بقا وي. تر ټولو ډېره سیاسي شتمني درته څوک درکوي؟ د افغانستان خلک! په بدل کې یې درنه څه غواړي؟ یوازې یو شی: خدمت! آیا خدمات په داسې ډول وړاندې کېږي چې خلکو ته د منلو وړ وي؟

له تعلیمي پلوه تاسې د دې هیواد نخبه ګان یئ، خو له سیاسي پلوه یې خدمتګاران یئ. که تاسې دا فرهنګ خپل کړئ چې نخبه‌ګان یئ، نو هر یو باید زرې موټر او څلور منزله کور ولرئ. په دې ډول هیواد بربادۍ ته ځي. که تاسې د مساوات حس ونه لرئ او دا احساس ونه لرئ چې یو نسلي رسالت لرئ او باید پرځای یې کړئ، نو په دې پوه شئ چې برخلیک مو د خرابېدو خوا ته روان دی.

بنسټونه باید رامنځته شي. تاسې چې کوم میراث پرېږدئ، په هغه کې باید فعال بنسټونه وي. داسې بنسټونه چې له یوه نسل نه بل ته انتقال په اساسي ډول مدیریت کړي. یوویشتمه پېړۍ له اتلسمې او نولسمې سره توپیر لري. په اوسنۍ پېړۍ کې سیاسي شتمني له رهبرۍ او مدیریته رامنځته کېږي.

رهبري څه ده؟ رهبري پر ځان تمرکز نه، بلکې برنامه او د کار اصول او قواعد جوړول دي. موږ وسیله یوو، هدف نه یوو، هدف ولس دی، هدف د هیواد ثبات او سوکالي ده. نو مهمه دا ده چې دوامداره قواعد جوړ کړو او فردمحوري ونه کړو. هر ډول چې کېږي د شخصیت محورۍ د فرهنګ مخه باید ونیول شي. د اصولي راکړې ورکړې یو فرهنګ باید رامنځته شي. مشروع رقابت باید وهڅول شي او خصوصاً

د افغانو ښځو ونډه باید جدي وګڼل شي.

ښځې ادارو ته راغلې دي، خو ځوانان لا هم ښځې ځپي، ادارې اوس هم ښځې ځپي، فرهنګ نه دی بدل شوی. دغه فرصت ما د خپلو صلاحیتونو له لارې رامنځته کړی دی، خو که افغانې ښځې ته سیاسي او ټولنیزه شتمني او مهمه ونډه ور نه کړئ، نو زر کلن زیان به څنګه ډکوئ؟

د زر کلن زیان خبره مې وکړه، د ښاغلي مجید زابلي کیسه رایاده شوه. د بحث په دې وروستیو کې به درته د مجید زابلي کیسه وکړم. د هیواد ته چې څومره ښې اقتصادي طرحې لرلې، ټولې د مجید زابلي وې. له بده مرغه د هغه وخت او دربار د روڼ اندو شرایطو د هغه طرحې عملي کېدو ته پرې نه ښودې. د زیان ډکولو لپاره هغه ډېر ساده تحلیل درلود. د غزني (مرکزي افغانستان) د اوبو لګولو سیستم علاءالدین له منځه یووړ. د افغانستان د شمال او شمال ختیځ سیستم چنګیز خان ویجاړ کړ او د سیستان، هلمند او فراه سیستم امیر تیمور له منځه یووړ.

په تېرو اته سوو تر زرو کالو کې دغه ورانې بېرته نه دي راډک شوي. د کمال خان بند ان شاء الله زر بشپړېږي، دا به اته سوه کاله زیان راډک کړي، خو د افغانستان شمال او غزني لا پاتې دی.

تاسې ته ډېر لوی لوی کارونه پراته دي او دا کارونه لوی همت غواړي، په دې خاطر درسره وروستۍ خبره د انساني پانګې په اړه کوم.

## انساني شتمني

هېڅ يوه شتمني تر هغې په درد نه خوري چې تاسې د دې وطن د يوه انسان په حيث او د دې خاورې د يوه ژمن وګړي په توګه خپل فکر او لمن دومره پراخه نه کړئ چې ټول افغانان په کې راونغاړئ. تر څو چې ستاسې لمن دومره پراخه نه شي چې يو افغان ترې بهر پاتې نه شي. تر څو چې ستاسې فکر دومره منسجم نه شي چې پر خپلو څلور ميليونه کډوالو فکر ونه کړئ چې په کومه بېچارګۍ کې دي، تر څو چې په هغو څلوېښت سلنه خلکو فکر ونه کړئ چې د فقر تر ليکې لاندې دي، تر څو چې په هغه دېرش سلنه خلکو فکر ونه کړئ چې د شپې نهر ويده کېږي او که د ورځې دوه وخته ډوډۍ ومومي خوشاله وي.

تاسې د فکر او کار کولو ټولو فرصتونه لرئ. زه په دې باور يم چې تاسې د افغانستان د معاصر تاريخ تر ټولو ستر نسل يئ، خدایﷻ دې وکړي چې د دغه بحث د دې لامل شي چې تاسې خپل دغه رسالت په رښتيني ډول پوره کړئ.

منه، پخير اوسئ

***بلال ذوالفقاري (کابل پوهنتون)**: له نباغلي جمهور رئیس نه زما پوښتنه دا ده چې موږ څنګه او په کوم میکانیزم داسې ملي هویت رامنځته کولای شوو چې د افغانستان ټول وروڼه قومونه په کې ځان ګډ احساس کړي؟*

**جمهور رئیس**: ډېره مننه، مهمه پوښتنه ده!

یو: زموږ اساسي ټکی د اساسي قانون تطبیق دی. د اسلام مقدس دین ارزښتونه په مطلق ډول زموږ په اساسي قانون کې ځای شوي دي. تاسې یې سره پرتله کړئ. زموږ اساسي قانون په قطعي ډول په نړۍ کې تر ټولو اساسي ترین اسلامی قانون دی. د دې قانون دویم څپرکی د اتباعو د حقونو په اړه دی او دا د بشري حقونو تر اعلامیې څو څو ځله ډېر د عملي کېدو وړ دی. ځکه د بشري حقونو اعلامیه اجرائیوي وسیله نه لري، خو اساسي قانون دولت مکلف کړی چې عملي یې کړي. زموږ حقوق او وجایب زموږ په اساسي قانون کې راغلي دي، نو لومړۍ خبره دا ده چې د دولت اوسنی شکل او جوړښت د اساسي قانون د تطبیق جوابګوی نه دی. په اداراتو کې د کار کولو میراث اوس هم د باداریٰ میراث دی او موږ باید د خدمت فرهنګ په اساسي ډول رامنځته کړو.

دويم: موږ د حکومتولۍ پنځه پړاوه لرو:

١) ***کلی***

٢) ***ولسوالي***

٣) ***ښاروالي***

٤) ***ولايت***

٥) ***وزارت***

له ولاياتو، ښاروالیو، ولسوالیو او کليو سره د کابل د اړيکو بڼه ضعيفه ده. په اوس وخت کې باید زموږ تمرکز د محلي حکومتولۍ په جوړولو وي. د پلازمېنې په توګه، د افغانستان له هرې سيمې سره د کابل د اړيکو بڼه باید ځان ثابت کړي او د افغانستان د هرې سيمې د ستونزې په حل باید پوه شي. په همدې خاطر درته وایم چې تاسې باید د دې وطن د انساني شتمنۍ په توګه د افغانستان پېژندنې ظرفيت ولرئ. زه د افغانستان ډېرو سيمو کې په پښو، آس او لارۍ کې ګرځېدلی يم. په دې خاطر ګرځېدلی يم چې افغانستان لا ډېر وپېژنم. خو د افغانستان پېژندنې په برخه کې زما دويم درس له بهرنيو ځواکونو افغان ځواکونو ته د نظامي واک د لېږد په دوره کې و. په هغه دوره کې د افغانستان هر ولايت ته له څلورو تر لسو ځلو تللی يم.

د جمهوري رياست په لومړۍ پنځه کلنه دوره کې مې ۸۹ ځله ولايتي سفرونه کړي دي. تر څو چې ستونزې پخپله له خلکو وا نه ورئ، حل

لارې ورته نه شئ پیدا کولای. د ستونزو پېژندلو او تشخیص لپاره باید خلکو ته غوږ کېښودل شي. باور هغه وخت رامنځته کېږي چې د حکومتدارۍ عرضه او تقاضا یو بل سره اړیکه ولري او ان شاء الله ستاسې نسل په مرسته دا کار عملي کېدونکی دی.

***پوښتنه:*** *ښاغلی جمهور رئیس، تاسې مخکې د تېر، اوس او راتلونکي د روایت په اړه له محصلینو پوښتنه وکړه. تاسې د تېر تاریخ ډېر مثبت ټکي یاد کړل. زه فکر کوم چې اوس د ریفورم او بیارغونې وخت دی. تاسې چې غږېدئ، موږ په کې خپل راتلونکی ولید، دا هغه راتلونکی دی چې تاسې راته ساز کړی دی. د دې ټولو لپاره درنه مننه کوم، که په همدې سیستم مخ ته لاړ شو، زموږ راتلونکی به هم ډېر ښایسته وي.*

*زه فکر کوم چې په ټول هیواد کې د افغانستان د تاریخي ودانیو په بیارغونو ځینې نیوکې شته، سره د دې چې دا ډېر مثبت کار دی. ځکه دا ودانۍ زموږ د ملي هویت برخه او ملي شتمني ده، نو د دې نیوکو سره به بیا هم د بیارغونې دغه لړۍ همداسې روانه وي، که د نیوکو له امله به ورو شي؟*

**جمهور رئیس:** لومړی له تاسې ډېره مننه!

زموږ ټولنه آزاده ټولنه ده او په آزاده ټولنه کې هر ډول بحث مطرح کېدای شي، پر موږ چې کومې نیوکې کېږي، موږ یې په سر سترګو منو. اوس تاسې پخپله له ځانه دا پوښتنه وکړئ چې پخوا به هغه خوا ته تللئ او د دارالامان ماڼۍ کنډر به مو لیده چې ورځ په ورځ نور هم

ورانېده، نو څه احساس مو کاوه؟ د کمترۍ احساس مو کاوه؟ د عقدې احساس مو کاوه؟ که په دې مو ویاړ کاوه چې یوه کنډر ته مخامخ ولاړ یئ؟

لومړی: د دارالامان ماڼۍ په رغوونې له نهه میلیونه ډالرو لږ لګښت راغلی دی. موږ د افغانستان د بهرنیو چارو وزارت وارزوه، کوم دیپلوماتان چې اړین نه دي، یوازې د هغو په کمولو هر کال ۱۵ میلیونه ډالر سپمولای شو، دا په دې معنی ده چې په یوه پنځه کلنه دوره کې یوازې د دې دیپلوماتانو معاش ۷۵ میلیونه ډالر کېده.

دویم: په دوه پوړو کې ملي موزیم او درېیم پوړ کې داسې ځای چې د افغانستان لوړرتبه مېلمانه په کې ووسېږي او له بلې خوا د دارالامان په اړه د غازي امان الله خان لرلید هم پوره کړی شي، آیا دا ټول شیان په ۹ میلیونه ډالره پانګونې نه ارزي؟

د لګښت بل مثال وګورئ. زه چې د مالیې وزیر وم، حلقوي سرک مې یو کیلومتر په دوه سوه زره ډالر نه قبلاوه، محاسبه به مو کوله چې تر یوسل او اتیا زره یې راښکته کړو، خو تاسې ولیدل چې وروسته د یوه کیلومتر حلقوي سرک بیه یو میلیون ډالرو ته لوړه شوه کنه؟

د عیدګاه جومات نن د کابل د خلکو لپاره د ویاړ ځای دی که نه؟ دا به ښه وای چې د افغانستان یو تاریخي جومات همداسې وران وېجاړ پروت وای؟

نو عرض مې دا دی چې که د لګښتونو په شفافیت کې ستونزه وه، موږ

يې په اړه نيوکې زر ځله منو، که بيارغونه او د کار په بڼه کې کومه ستونزه وي، زموږ دروازې د خلکو نيوکو ته پرانيستې دي؛ البته که په داسې حال چې تاريخي هويت مو د لوټ کېدو په حال کې دی، که په دې وخت کې تاسې په خپل تاريخ پانګونه نه کوئ، نو دا پرېکړه بايد ملت پخپله وکړي.

زه په دې باور يم چې د هيواد د تاريخي ودانيو بيارغونې ملي پروګرام به له يوې خوا د دې ودانيو د بيارغونې لامل شي او له بلې خوا به هيواد ته عايداتي سرچينه هم شي. پغمان په درېيو کالو کې خپل ټول لګښت بېرته پوره کوي. جبل السراج يې په څلورو کالو کې پوره کوي. ان شاء الله ډېر زر به دا فرصت رامنځته شي چې دغه ځايونه د سيالانيانو د تګ راتګ ځايونه شي، ځکه دا تاريخي ځايونه يوازې د لګښت لپاره نه دي. اړينه ده چې دا هره ودانۍ د يوه بنسټ په توګه د اُمنا پلاوي له لوري په مستقل ډول مديريت شي او خلک يې پايلې وګوري. موږ که په پغمان کې بالاباغ نه وی ساز کړی، نن به خلک د تفريح لپاره نه ورتللی. دا کار لومړی له سل جريبه ځمکې پيل شو او اوس يو نيم زر جريبو ته رسېدلی چې د افغانستان راتلونکی نسل د تفريح ځای ولري. دا پارک له دېرش تر پنځه دېرش زره تنو د ځايدو ګنجايش لري. ان شاء الله د سپرلي په لومړيو کې به يې بياځلی دروازه خلکو ته پرانيسل شي.

دلته يوولس ماڼۍ ورغېدې او ټول لګښت يې دوه ميليونه ډالر دی. خلک دې پخپله يوه نتيجه ګيري وکړي، نظرونه دې واخلي، بحث دې

